

# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
کور د سولې کور د تورې
دا وطن د ټولو کور دی
د پښتون او هزاره وو
ورسره عرب، گوجر دي
براهوي دي، قزلباش دي
دا هېواد به تل ځلیږي
په سینه کې د آسیا به
نوم د حق مو دی رهبر

دا عزت د هر افغان دی
هر بچی یې قهرمان دی
د بلوڅو د ازبکو
د ترکمنو د تاجکو
پامیریان، نورستانیان
هم ایماق، هم پشه یان
لکه لمر پر شنه آسمان
لکه زړه وي جاویدان
وایو الله اکبر وایو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحیم




د پوهنې وزارت

# هنر

# ART

## نهم ټولګی

د چاپ کال ۱۳۹۹ هــ . ش.

## د کتاب ځانګړتیاوې

**مضمون:** هنر

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د هنر برخې د درسي کتابونو علمي او مسلکي غړي

**اېډېټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اېډېټ ډیپارټمنټ علمي او مسلکي غړي

**ټولګی:** نهم

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۹ هجري شمسي

**بریښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af

## د پوهنې د وزیر پیغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته یې ژوند رابښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه یې برخمن کړي یو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراګانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږګوني بنسټیز عناصر بلل کیږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تأسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې یې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپیڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام او د داسې ودان افغانستان په هیله چې وګړي یې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزیر

دکتور محمد میرویس بلخي

# لړلیک

| | سرليک | مخونه |
|---|---|---|
| ۱۱ | له شعر څخه انځورګري | ۳۱ |
| ۱۲ | له کمپيوټر سره بلدتيا | ۳۳ |
| ۱۳ | د يوې ساده ميناتورۍ کاپي کول | ۳۵ |
| ۱۴ | د بېلو بېلو سکوېونو او ګل ګنډنو سره بلدتيا | ۳۷ |
| ۱۵ | د يوه ساده ګل (ګنډنې) جوړول | ۴۱ |
| ۱۶ | د افغاني هنرمندانو پېژندنه | ۴۳ |
| ۱۷ | د قرآني آيتونو برجسته کول | ۴۵ |
| ۱۸ | په نقاشۍ کې د (Paint) له پروګرام ګټه اخيستنه | ۴۷ |
| ۱۹ | د افغانستان له ملي موزيمونو سره بلدتيا | ۵۱ |








## ۱ لوست

# په رنګه خپو انځور ګري
# تر اوسه مو په رنګه خپو نقاشي کړې ده؟



له نقاشي کولو مخکې خپل کاغذ په خپله خوښه له منځ څخه قات کړئ.
داسې هم کولی شئ چې کاغذ يو يا څو ځايه قات کړئ. بيا کاغذ بېرته خلاص کړئ او په خپله خوښه رنګه خپې چې نه ډېرې ټينګې وي او نه اوبلنې د کاغذ پر يوه قات کېږدئ او بېرته يې قات کړئ او لږ څه فشار ورکړئ. کله چې کاغذ خلاص کړئ و به ګورئ چې د پخوانۍ خپې په شان يوه بله خپه د کاغذ په بل مخ پرېوتې ده.
دا کار څو واره په لويو او وړو خپو د کاغذ په بېلو بېلو برخو تکرار کړئ چې د کاغذ د قات کېدو له امله رنګينې خپې منځ ته راشي. بيا لږ څه صبر وکړئ چې رنګ وچ شي. تر وچېدو وروسته د رنګه خپې له هرې خوا څخه وګورئ او په هغې کې بېل بېل شکلونه پيداکړئ.



او بیایې د خپلې خوښې په انځورونو بشپړ کړئ.
هر څومره شکلونه چې په کې پیداکړئ ستاسې د بریالیتوب نښه ده.



(۲ تصویر) د خپلې خوښې خپې د کاغذ پرمخ کېږدئ او هغه قات کړئ، ترڅو په بل مخ هم همغه خپه په کې رامینځته شي.



(۳ تصویر) له هرې خوا څخه رنګه خپې ته وګورئ او آشنا شکلونه په کې پیداکړئ.
رنګه خپې په آشنا شکلونو واړوئ.



**تمرین**

د رنګه خپو شکلونه چې په ناڅاپي ډول ایجاد شوي دي، بشپړکړئ.

# ۲ لوست



## د معاصر افغانستان د هنر تاریخ

### د اوسني او پخواني افغانستان په هنري آثاروکې کوم توپیرونه په ګوته کولی شئ؟

له هندوستان څخه د چاپ د ماشین په راوړلو او د ماشین خانې (مطبعې) له تأسیس څخه وروسته په کابل کې د کتابونو، ادبي، تاریخي او نورو رسالو د چاپولو کار پیل شو. د افغانستان لومړنۍ جریده ((شمس النهار)) په ۱۲۵۲ هـ ش کال کې نشر شوه. د مشروطه غوښتونکو د غورځنګ په وخت کې د افغانستان د خلکو په تاریخ، فرهنګ، ادب کړو وړو کې لوی بدلونونه څرګند شول چې د هغو له جملې څخه د نویو ښوونځیو تأسیس، د سرا ج الاخبار د جریدې نشریدل، د دارالتالیف تأسیس، د حبیبې ښوونځي تأسیس، د چاپ دبرینه خونه، د تورو او زنګو ګرافي او د درسي کتابونو تألیف د دې سبب شو چې د نوي نسل روښان فکران وروزل شي. د دې بدلون په اوږدو کې د



(۱ ـ تصویر) نوې د چاپ خونه

لوېديځې نړۍ له تخنيکي پرمختګ او د نړۍ له آزادي غوښتونکو بدلونونو سره اړيکې ټينګې شوې. د دموکراسۍ په لسيزه کې د افغانستان په معاصر تاريخ کې د استعدادونو د غوړېدو او د علمي او فرهنګي فعاليتونو د سرته رسولو زمينه برابره شوه. په دې لسيزه کې اديبانو، څېړونکو او عالمانو خپل آثار د پوهې او هنر نړۍ ته وړاندې کړل. په ۱۳۰۲ هـ ش کال کې د صنايعو ښوونځی تأسيس شو. دا لومړنی هنري ښوونځی و چې د (نقاشۍ، مجسمه جوړونې، معماري او ...) څانګې يې درلودې چې دا د نويو هنرونو د رامنځ ته کېدو پيل و. په دې مرکزونو کې د هنرمندانو روزنې دې ته لار پرانيستله چې د نوې ټولنې له غوښتنو سره سم ګرافيک، تياتر او موسيقۍ ته پراختيا ورکړل شي. په دې مرکزونو کې د فارغانو له خوا د کتابونو د تأليف، د هنر په بېلو بېلو څانګو کې د ډول ډول هنري آثارو فعاليت پيل شو. د دې هنرمندانو هنراو هغه هنر ونه چې پخوا په افغانستان کې موجود وو، د هېواد ضرورتونو ته يې ځواب ورکاوه. په نننۍ نړۍ کې د اړيکو نيول او اطلاعاتي رسنۍ ډېر ارزښت لري او بېلا بېلې رسنۍ، لکه: ورځپاڼه، مجله، راديو، ټلويزيون، انټرنټ د هنرمندانو د هنر د مختلفو څانګو په غاړه وو چې دا هنرمندان د ښکلو هنرونو په پوهنځي او د صنايعو په ښوونځي کې پر زده کړو او تحصيل بوخت وو، ترڅو هنري آثار طرحه او سرته ورسوي. د مثال په توګه: د ګرافيک د څانګې زده کوونکي زده کوي چې په څه ډول نښانونه طراحي کړي او د مختلفو ورځو له پاره پوسترونه جوړ کړي د ادارو، مؤسسو او شرکتونو لپاره پاکټونه او نښانونه جوړکړي، مجلې او ورځپاڼې څه ډول طراحي کړي، د کتابونو پوښونه څه ډول انځور کړي او د فابريکو د محصولاتو لپاره څه ډول کارتنونه ډيزاين کړي.

هغه کسان چې د تياتر په څانګه کې تحصيل کوي، په مرکز او ولايتونو کې د تمثيل په چارو بوخت دي او يا په ټلويزيونو کې تمثيلي پارچې وړاندې کوي. ټوکې، فکاهي، هنري ټوټې او له ټلويزيون څخه د هغو وړاندې کول د معاصرې دورې له ځانګړتياوو څخه دي. ځينې هنرمندان د کاريکاتور يا طنزي تصويرونو د انځورونو فعاليت ترسره کوي مجلو او د ورځپاڼو لپاره انتقادي تصويرونه انځوروي.



(۲ تصوير): د قمرالدين چشتي د ښايسته ليکنې معاصر اثر



(۳ تصوير): د شير محمد باشي زاده د ښايسته ليکنې او تذهيب معاصر اثر

دا فعالیتونه په ځانګړې توګه په بېلوبېلو  مذهبي، اقتصادي، ټولنیزو او سیاسي برخو کې زیات ارزښت پیداکوي. په شلمه پېړۍ کې په واقعي شکل د نړۍ په ټکنالوژۍ، اړیکو نېولو، په نوې ښوونه او روزنه او پوهنځیو کې زیات بدلونونه را منځ ته شوي دي. نوې اړتیاوې یې را پیداکړې. په معاصر ژوند کې دا فعالیتونه له هنر سره نژدې اړیکې لري او یا د هنري څانګو له  خوا وړاندې کېږي.

د بېلو بېلو څانګو هنرمندانو، لکه: د معمارۍ، نقاشۍ، ګرافیک، تیاتر او موسیقۍ هنرمندانو په نوي دوران کې د ښارونو څېرو ته بدلون ورکړی دی او د انسانانو په ژوندانه کې ډېر بدلونونه راغلي دي.



(٤ ـ تصویر) په روغني رنګونو د یوې کوڅې تصویر



(٥ـ تصویر) د معاصرې نقاشي نمونه، په مزارشریف کې د سخي صاحب زیارت



(٦ تصویر) دکتاب په پښتۍ دګرافيک طرحه

په نننيو وختونو کې يو ټلويزيوني تبليغ او ډيزاين په اقتصادي چاروکې زيات ارزښت لري او هغه هنرمندان چې دا دنده پر غاړه لري، بايد د کارکولو او د طرحو د وړاندې کولو د بېلو بېلو طريقو زده کړه وکړي. سربېره پردې د هنر ځينې څانګې، لکه: نقاشي، ګرافيک، کاريکاتور او سينما نړيواله جنبه لري چې د دې څانګو د هنري آثارو وړاندې کوونکي په نړيوالو سياليو کې په فرهنګي او هنري چارو بوخت دي. له دې امله ده چې د افغانستان ډېر هنرمندان په نورو هېوادونوکې په هنري فعاليتونو بوخت دي، ځکه چې هنر پوله او سرحد نه پېژني او د انسانانو په روح باندې خپل تاثير پرېږدي. د افغانستان معاصر هنرمندان هڅه کوي چې د افغاني هنر او هنرمندانو له پيژندنې سربېره نړيوال معاصر هنرته لاره پيداکړي.
او خپل هنر او فرهنګ په همدې چوکاټ کې بيان کړي.

**تمرين:**

١ـ له کوم معاصر هنر سره مينه لرئ؟

٢ـ هغه پوسترونه چې په تصوير کې يې وينئ، په ځير سره وګورئ؟ هغه په کومو طريقو خپل پيام خلکوته لېږدوي؟

٣ـ د کومو ادارو او مؤسساتو نښانونه پېژنئ؟ تر اوسه مو د بانکونو نښانونوته پاملرنه کړې ده؟

٤ـ د ټلويزيون د پروګرامونو په طراحۍ کې کوم هنرمندان برخه لري؟ د کاليو په طراحۍ، ديکور، رڼا اچونه، د موسيقۍ په انتخاب، لارښوونه او ... پروګرامونو ته پاملرنه وکړئ.

٥ ـ د کاريکاتور د طراحۍ موخه څه ده؟



## ۳ لوست



# په مصنوعي موادو ټاپه کول

## په باطله موادو کوم کارونه سرته رسولی شئ؟

ستاسي په شاوخواکې داسې مواد وجود لري چې د استفادې وړ نه دي او کولی شو چې د ټاپه کولو لپاره ترې ګټه واخلو. خپلې شاوخواته ښه وګورئ هغه مصنوعي مواد چې د ټاپه کولو وړتیا لري، را ټول کړئ، لکه: بېکاره تنې، الپن، کرېې ستنې، سرپوښ، د غاښو د کریم تیوپ، د اورلګیت خالي قطې او ... او همدارنګه کولی شئ چې د اوسپنیزو لویو او وړو سکو لکه (یوه افغانیګي، ۲ افغانیګي، ۵ افغانیګي) ښخه ټاپه جوړه کړئ. د اسفنج



(۱ تصویر) په مختلفو طبیعي موادو ټاپه کول



(۲- تصویر) ټاپې په اشنا شکل بدلې شوې دي



(۳- تصویر) د ښکلو طرحو لپاره له مصنوعي موادو څخه ګټه اخیستنه.



(٤ تصویر) له مصنوعي موادو څخه د نقاشي تکمیل شکل

له ټوټــو، د کاغذ له وړوکې ټوټې او له پلاســتیکي کڅوړو څخه په ټاپه کولو کې ګټه اخیســتل کېږي. له دې موادو څخــه په عــادي او یا پــه لاس ټینګ شــوي حالت کې کار اخېستل کېږي. هغه په بېلــو بېلو رنګونو ککړ کړئ او په یوه ســپین کاغذ یــې ولګوئ، بیا په ډېر ځیر ســره ورته وګورئ، وروســته د خطونو په مرســته نوي شکلونه ترې جوړ کړئ.



**تمرین:**

۱ـ د څو ډیزاینونو له یوځای کېدو څخه بېل بېل شــکلونه جوړولی شــئ؟ او د ټاپې په منځ کې نوی ارتباط منځ ته راوړی شئ؟

۲ـ له ټاپو څخه په ګټې اخیستنې سره په خپله خوښه انځور وکاږئ.

## ۴ لوست

# په ختو کې شبکه جوړول:

**شبکه جوړول مو په کوم ځای کې لیدلې دي؟**
**ستاسې په فکر ولې خلک شبکه جوړوي؟**

له اسلامي ډیزاینونو څخه په الهام اخیستلو چې له هغې سره بلد شوي یاست، د خپلې خوښې له ډیزاین څخه یوه شبکه جوړه کړئ. د دې کار لپاره مناسبه اندازه کاغذ چې د یوې تختې کاغذ $\frac{۱}{۴}$ برخه ده.



(۱ـ تصویر) له ختې څخه تیاره شوې ده.

دختو یوه صفحه د یو سانتي مترو په پنډوالي جوړه کړئ چې ستاسې له ډیزاین سره برابره وي. د هغې د تیارولو لپاره لومړی د ختو صفحه، په لاسو هواره کړئ، وروسته یې د اش گز یا پر یو بل شي باندې ښویه (هواره)



(۲ ـ تصویر) د ختېې په صفحه باندې په کاغذ کې ډیزاین کېښودل کېږي.

کړئ. د ختېې صفحې له تیارېدو څخه وروسته، په کاغذ کې انځور شوی ډیزاین د هغې پر مخ کېږدئ او د خطونو په سر داسې خطونه وباسئ چې په خته یې نښانې پاتې شي. په لازمو وسیلو په خته باندې کوم خطونه چې پیداشوي دي، د یوې پلاستیکي چاړې په واسطه ژور کړئ او اضافي خته ترې پورته کړئ. په اخېر کې یې د لاس



(۳ ـ تصویر) ډیزاین د ختېې صفحې ته انتقال شوی دی او د کارولو وړ دی.

په واسطه ښویه کړئ. تر وچېدو وروسته شبکه شوې صفحه په داسې رنګونو سره رنګ کړی چې ښکلا یې لازیاته شي.



(٤ ـ تصویر) د ختې اضافه برخې د ختو له صفحې څخه وباسئ.



(٥ ـ تصویر) د ختې صفحه شبکه کاري شوې ده.

(٦ ـ تصویر) شبکه شوې صفحه رنګه کړئ ترڅو ښکلې شي.



**تمرین:**

د شبکې جوړولو لپاره نور کوم مواد مناسب دي؟ هغه پیدا کړئ او د شبکې جوړونې یوه نمونه جوړه کړئ.



# لوست

## د لوېديځ هنر

پوهیږئ چې د معاصر هنر ریښې په کومو دورو پورې اړه لري؟



(۱ ـ تصویر) د ((سان پیترو)) کلیسا د میکانژ اثرایتالیا روم ۱٥٦۹م.

رنسانس په لغت کې (بیازېږېدنې) ته وایي. داسې ویل کېږي چې ایټالیایي هنرمندانو د یونان هنري او لرغوني روم ادبي او هنري طریقو او روشونو ته مخه وکړه. له همدې امله د دې دورې نقاشۍ او مجسمې جوړونې طبیعت ته ورته والی لري. په دې دوره کې ډېر مهم هنرمندان، لکه ((داوینچي))، ((میکل آنژ)) او ((رافایل)) دي.

۱، ۲، ۳ او ٤ تصویرونو ته پاملرنه وکړئ.

(۲ ـ تصویر) اخیرنی ماښام دایوه دېوالي نقاشي ده چې د ((لئوناردو داوینچي)) اثر دی
د صومعي پر دېوال (د راهبانو د ژوند کولو ځای) ((سانتا ماریا دله مراتسیه)) د ایټالیا په میلان کې ۱٤۹۸ـ۱٤۹٥ م

په دې دوره کې د انسان د بدن طبیعي تناسبانو، تـون (د رنـګ درجه یا تېزوالـی او تت والی) (سـیوري او روښـنایي) ریاضي، هندسـي او پرسـپکتیو (لرې او نژدې) په نقاشۍ، مجسمه او معمارۍ کې زیات ارزښـت درلود. انسـان او د هغـو د ښـو ښـودنه د دې دورې له هنري کارو څخـه وه. دا هنـري ښې او حالتونـه له ایټالیـا څخـه ټولې اروپـا ته وغزیـدل. د بېلو بېلو هنري ځانګـو هنرمندانو تر ۱۷ میلادي پېړۍ پورې د رنسـانس له دورې څخه تقلید کاوه، تر هغې وروسته د ((باروک)) هنرمندانو لکه ((رامبراند)) په نقاشۍ کې نوې طریقې په ځانګـړې ډول له نور اوسـیوري څخه په ګټې اخیستلو سره کار پیل کړ. ۵ تصویر ته وګورئ


(۳ ـ تصویر) د ( سسـتیني) د کلیت په چت نقاشـی د ( میلانژ) آثر واتیکان روم ایټالیا دیوالي نقاشی(۱۵۰۸ تر ۱۰۱۲ پورې.)


(٤ ـ تصویر) د ((د آتن مدرسه)) د ((رافایل)) آثر پـه واتیـکان، روم، ایتالیـا کې ۱۵۰۹ ـ ۱۵۱۱ میلادي



(۵ ـ تصویر) پخپله د نقاش څېره د ((رامبراند))
اثر ۱۶۵۹ ـ ۱۶۶۰ د باروک هنر

په ۱۸ میلادي پېړۍ کې هنرمندانو شاعرانه خیالاتو، لیدنو، عواطفو او احساساتو ته مخه وکړه او پاروونکي رنګونه او طراحي یې انځور کړې او رومانتیزم یې منځ ته راوړ. د رومانتیزم مشهور نقاشان ((دولاکروا)) او ((ژایکو)) نومونه د یادولو وړ دي. ٦ تصویر ته وګورئ.

وروسته د اکاډیمي استادان، لکه: ((انګر)) او ((داوید)) د دویم ځل لپاره د رنسانس دورې ته را وګرځېدل او په هنري موضوعاتو کې یې له (پخوانیو) طریقو څخه پیروي وکړه او نوی کلاسیزم یې منځ ته راوړ. (۷او ۸ تصویر ته وګورئ.)

نور هنرمندان، لکه: ((میله)) او ((ګربه)) هغوی نوي طریقې او روشونه کارول او د رومانتیزم له شاعرانه خیالاتو او احساساتو څخه تېر شول او د هنر له اکاډمیکو اصولو څخه یې فاصله ونیوله. دوی په خپلو آثاروکې د خلکو د رښتیني ژوندانه په انځورولو پیل وکړ. له دې امله د دوی د کار موضوع د کارګرانو ژوند، د کلیوالو ژوند او د ټیټې طبقې ټولنه وه او ریالیزم یې منځ ته راوړ.



(٦ ـ تصویر) د امپراتورۍ د یوه ((سپور افسر))
تابلو د ((ژریکو)) اثر ۱۸۱۵ م د رومانتیزم هنر

(٦ تصویر) د (هوارس د وروڼو) د نقاشۍ تابلو د (داريد)
آثر په ١٧ ٨٤ م د کلاسيزم هنر.



(۷ تصوير) د وړو ټولوونکو نقاشي. د میلۀ اثر ۱۸۷۵ م د ريالزم هنر

## تمرين

۱- د دې لوست د نقاشۍ د آثارو موضوعګانې له يو بل سره پرتله کړئ.

۲- د لوست په انځورونو کې څه توپيرونه وينئ؟

٦ لوست

# د کلیزې ډیزاین او نقاشي



## تر اوسه مو څو ډوله کلیزې لیدلې دي؟

ډیزاینـران څو ډولـه کلیزې، لکه: جیبي، ســرمیزي، دېوالي او ... جوړوي ترڅــو خلک له هغــو څخه ګټه واخلي. دا کلیزې په یــوه کال کې د ورځو، اونیو او میاشــتو تاریخ راښیي او د بېلو بېلو ډېرو ښکلو ډیزاینونو درلودونکې دي. ډیزاینران د کال د میاشتو او فصلونو اړوند ښکلو تصویرونو، ډیزاینونو او نقاشي شوي انځورونو څخه ګټه اخلي.



(۱ تصویر) د لمر د سترګې تودوخه څه ډول په نقاشی کې ښودلی شئ.



(۲ ـ تصویر) په منې کې د ونو پاڼې کوم رنګونه غوره کوي.





JULY 1975

| WEEK | 1 MONDAY | 2 TUESDAY | 3 WEDNESDAY | 4 THURSDAY | 5 FRIDAY | 6 SATURDAY | 7 SUNDAY |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| 27 | 30 | 1 | 2 | 3 | 4 | 5 | 6 |
| 28 | 7 | 8 | 9 | 10 | 11 | 12 | 13 |
| 29 | 14 | 15 | 16 | 17 | 18 | 19 | 20 |
| 30 | 21 | 22 | 23 | 24 | 25 | 26 | 27 |
| 31 | 28 | 29 | 30 | 31 | 1 | 2 | 3 |

SAS
SCANDINAVIAN AIRLINES

کومې موضوع گانې تاسې د پسرلي او اوړي په فکر کې اچوي؟ کومې مېوې تاسې ته منی دربه یادوي؟ د ژمي کومې منظرې ستاسې په خیال کې گرځي؟ تاسې یوه کلیزه څه ډول ډیزاین کوئ؟

په دې اړه کوم فکر چې ستاسې په خیال کې گرځي، هغه په پام کې ونیسئ او بیایې ډیزاین او انځور کړئ. ستاسې کلیزه په څلورو فصلو وېشل کېږي او دولس بېلې بېلې میاشتې لري.

(۳ ـ تصویر) په اسکاندیناویا کې د کلیزې یوه پاڼه






(٤ ـ تصویر) په افغانستان کې د یوې کلیزې یوه برخه ډیزاین شوې ده.

د یوه کال د ښودلو لپاره له کومو
تقسیم بندیو څخه ګټه اخلئ؟
کوښښ وکړئ چې د هر فصل او
دولسو میاشتو لپاره هغه تصویرونه،
ډیزاینونه او نقاشي پیداکړئ چې د
هغوی بیانوونکي وي.




(٥ ـ تصویر) په امریکا کې ډیزاین شوې کلیزه




(٦ ـ تصویر) په افغانستان کې ډیزاین شوې کلیزه



طبیعي منظرې د کال په مختلفو فصلونو کې څه توپیرونه لري؟






(۷ ـ تصویر) په چین کې ډیزاین شوې کلیزه



**تمرین**:

۱ ـ یوه دېوالي کلیزه ډیزاین کړئ او هغه په رنګه انځورونو ښکلې کړئ.

۲ ـ څلور کسیزې ډلې جوړې کړئ. د هرې ډلې غړي دې د کلیزې په لیکنو او رسامۍ باندې سره خبرې او مشورې وکړي او تصمیم دې ونیسي. وروسته دې د ډلې هر غړی په یوه پاڼه کاغذ کې د کلیزې یو فصل جوړ کړي. کاغذونه دې سره وصل کړي. کلیزه ترې جوړېږي.



# ۷ لوست



## د لوېديځ معاصر هنر

### د شلمې پېړۍ په هنرونو پوهېږئ؟

په ۱۹ ميلادي پېړۍ کې د مُدرن نقاشۍ غورځنګ د امپرسيونيزم په نوم منځ ته راغی. د فرانسې ځوانو نقاشانو د هنري کار ځای څخه د باندې په نوې طريقه نوې موضوعګانې نقاشي کړې. دې نقاشانو په خپلو آثارو کې د نور او رنګونو پر يوبل باندې د اغېزې کار پيل کړ او ډېرې تورې سيورې يې څنګ ته پرېښودې. دوی د نقاشۍ لپاره د ورځې د هر مهال او په ډېره بېړه يې رنګه خپې (لکې) کېښودې، ترڅو نور، رنګ او موضوع په ځانګړو شيبو کې تمثيل کړي. لومړی تصوير ته وګورئ.



(۱ تصوير د رود په غاړې منظره د (مونه) اثر امپرليتونيزم هنر په روغني رنګونو ۱۸۸۰ م کال



(۲ ـ تصویر) د ((پیکاسو)) اثر د کوبیزم هنر

کوبیزم (هندسي شکلوته تمایل) د شلمې میلادي پېړۍ مهم هنري غورځنګ دی. د امپرسیونستانو پر خلاف چې هغوی په ځانګړو شیبو کې نور او رنګ ته پاملرنه لرله، کوبیستانو د حجمونو او هندسي ساده شکلونود بېلا بېلو زاویو د لیدلوپه پام کې نیولو سره د نوو ترکیبونو په انځورولو کار پیل کړ. دوی یوه موضوع له مختلفو زاویو څخه ډیزاین او طراحي کوله او بیابه یې همدا تصویرونه یوځای کول، ترڅو وکولی شي له بېلا بېلو لورو څخه یې په نقاشۍ کې وښیي. کوبېزم د طبیعت د تقلید په ځای د لیدنې او ذهني هنر ته مخه وکړه.

**۲ـ تصویر ته وګورئ:**

په اروپا کې یوبل ډېر مهم او مدرن هنري غورځنګ اکسپرسیونیزم دی.د اکسپرسیونیزم هنرمندانو د خپلوعواطفو د بیا نولو له پاره له رنګونو څخه په ذهني ډول ګټه اخیستله. ۳ تصویر ته وګورئ. دوی د رنګونو په تغیرولو، په شکلونو کې مبالغه او واقعي تناسبونو ته تغیر ورکول په موضوعګانو کې د خپل دروني احساس بیانول پیل کړل.



(۳ ـ تصویر) ((فریاد)) د ((مونک)) اثر روغني رنګ او د تمپرا رنګونه. د اکسپرسیونیزم، هنر ۱۸۹۳ م

د کوبیستانو او اکسپرسیونیستانو له تجربو وروسته طبیعت ته ورته ذهني او خیالي تصویرونه په نقاشۍ کې ځای پرځای شول، چې د رنسانس له دورې څخه د امپرسیونستانو تر دورې پورې یې رواج درلود. له همدې امله انتزاعي (ذهني) او د سوریالیزم هنرونو ته لاره خلاصه شوه او هنرمندانو له واقعي عالم څخه خیالي او فکري یا ذهني دنیا او خپلې باطني نړۍ ته مخه وکړه.

٤ او ٥ تصویرونه وګورئ. هنرمندانو وروسته موضوع ګانې له نقاشۍ څخه بېلې کړې او د خطونو او رنګونو په ترکیب یې پیل وکړ او آبسترک یې منځ ته راوړ.

(٦ او ٧ تصویر ته پام وکړئ.)

له هغه وروسته د شلمې پېړۍ په دویمه نیمايي کې په هنر کې نوې طریقې مطرح شوې. په هنري اثر کې هغه مفهوم د پست مدرن پیل و چې د هنرمند د خیال او فکر څخه یې زیات ارزښت درلود.

د هنرمند موخه د پست له مُدرنیست څخه داوه چې مخاطب فکر کولو او د هنري اثر درک کولو، بیانولو او واقعیت ته متوجه کړي، نو له دې امله په هنري اثر کې د لیدونکي خیال او فکر، موندنې له پخوانیو د ورو څخه زیات ارزښت پیداکړ.



(٤ـ تصویر) (( تداوم خاطره)) د ((دالی)) اثر روغني رنګ د سوریالیزم ۱۹۳۱ م



(٥ـ تصویر) ((بې حرکته وخت)) د ((ماګریت)) اثر روغني رنګ د سوریالیزم هنر ۱۹۳۸ م



(٦ـ تصویر) د ((کله)) اثر د ورخ پاڼې په کاغذ په روغني رنگ انتزاعي هنر ١٩٣٨ م



(٧ ـ تصویـر) ترکیـب بنـدي د ((موندریـان)) اثـر، تجریدي هنر ١٩٢٠ م



(٨ ـ تصویر) یوه چوکی، د کوسـوت اثر، د چوکی تصویر او لیکنې، د پسـت مُدرن هنر ١٩٦٥ م



**تمرین**:

مدرن هنر او پست مدرن هنرونه د سوریالیزم له هنر څخه مخکې هنرونو سره څه توپیر لري؟



## لوست

# له بیکاره کاغذي قطیو څخه د لاسي کار جوړول



### په بې کاره قطیو باندې څه کوئ؟
### کولی شئ چې له هغې څخه ابتکاري حجمونه جوړ کړئ؟

زموږ په شاوخواکې ډېر لوښي موجود دي چې له هغو څخه د هنري فعالیتونو لپاره ګټه واخلو. تر اوسه مو د سیم یا میخ،طبیعي موادو او بیکاره کاغذو څخه ښکلي ابتکاري شکلونه جوړ کړي دي؟ اوس غواړو چې له قطیو، لکه: د اورلګید قطې، د مېوو د اوبو قطې، د کاغذي دسمالونو قطې، د غاښونو د کریم قطې، د چای قطې او ... دا ټولې تجربه کړو. د دې لوست تصویرونو ته پاملرنه وکړئ. د مېوو د اوبو د قطیو او د کاغذي دسمالونو له قطیو څخه مو پیکپ موټر جوړ کړی دی. د دې لاسي کار مرحلوته پام وکړئ. له بېکاره قطیو څخه د لاسي کار جوړول په دوو طریقو سرته رسولی شئ. په لومړۍ طریقه کې قطې ځنګ په ځنګ کېږدئ، ترڅو وګورئ چې کوم شکل د جوړلو لپاره مناسب دی. په دویمه طریقه کې د خپلې خوښې شکل وټاکئ. وروسته د خپلې خوښې د شکل متناسبې قطې راټولې کړئ او هغه جوړ کړئ. د مثال په توګه د بېلو بېلو وسیلو، لکه: سرویس، الوتکه، بېړۍ، ګرځندی موټر، موټرسیکل او .. وروسته بیا هغه قطې چې تاسې ټاکلې دي او د جوړېدو لپاره مناسب وي را واخلئ، قطې ستاسې د خوښې د شکل په شان سره ونښلوئ، ترڅو ستاسې شکل

جوړشي. کولی شئ د قطیو اضافي برخې په بیاتي قطع کړئ او ځینې نورې برخې یې د خپل خوښ شوي شکل په شان جوړې کړئ. (د پیکپ موټر د تیر تصویروته پام وکړئ) وروسته یې په رنگه کاغذونو پوښ کړی او بیا هغه رنگه کړئ چې ښکلی شي د کار په اخیر کې، د موضوع جزئیات جوړ او لاسي کار مو تزئین یا ښکلی کړئ.



(۱ ـ تصویر) بېکاره قطی



(۲ ـ تصویر) د اوبو د مېوې قطی د ټایر په شکل بیاتي شوي دي



(۳ ـ تصویر) بېکاره قطی د پیکپ موټر په شکل سره نښلول شوي دي



(٤ ـ تصویر) د قطیو مخونه په رنگه کاغذ پوښل شویدی، ښیښې او نور جزئیات پرې اضافه شوي دي

**تمرین:**

له مقوا قطیو څخه د خپلې خوښې موضوع جوړه او ښکلا ورکړئ.

## ۹ لوست



# د هندسي ډيزاينونو کاپي کول

## د جام منار د ښتو ډيزاينونه مو ليدلي دي؟

مسلمانو هنرمندانو له هندسي شکلونو څخه په ګټې اخيستنې د ښېلو ښېلو آثارو په ښکلا کې د ډېر زيات مهارت درلودونکي دي.

هندسي ډيزاينونه له هندسي قاعدو سره سم انځورېږي. دا ډيزاينونه د ودانيو د ښکلا لپاره کارول شوي دي، ځکه چې هندسي ډيزاينونه خښتې او کاشي چې د مسطيل او مربع په شان وي، کارول يې اسان دي.

د هندسي شکلونو منظم تکرار چې دېوالونه يې پوښلي دي، ودانيو ته يې ځانګړې ښکلا وربښلې ده. ځينې ډيزاينونه له هندسي سطحې څخه ترکيب شوي، لکه: مثلثونه، مربع ګانې او شو ضلعي او ځينې نور يې د هندسي سطحوله ليکنو سره يو ځای راغلي دي. د جام د منار ډيزاينونه چې په هندسي سطحو جوړ شوي دي په غور وګورئ، په هغو کې د ((الحکم الله)) جمله چې په هندسي سطحو کښل شويده له ليکنې سره مقايسه کړئ. په ټولو طرحو کې د هندسي سطحو او د هغې وروستني ترکيب ته پام وکړئ. وګورئ چې هنري ذوق د هندسې له علم سره څه ډول ارتباط پيدا کوي.

له ترس کاغذ څخه په ګټې اخیستنې سره هندسي بېل بېل ډیزاینونه په ډبل کاغذ او یا په مقوا باندې کاپي کړئ، وروسته هغه د لاندې ډیزاین په شکل رنګه کړئ.



(۲ ـ تصویر) دبېلو بېلو برخو ډیزاین رنګه شوی؟



(۱ ـ تصویر) ډیزاین د ترس کاغذ په واسطه پلې شوي دي



(۳ ـ تصویر) د هندسي شکلونو ډیزاین جوړ شوی دی



**تمرین:**

۱: په کومو تصویرونو کې هندسي شکلونه وینئ؟

۲: ستاسي په چاپیریال کې هندسي شکلونه موجود دي، هغه پیداکړئ او د هغوی نظم ته پاملرنه وکړئ.

۳: د یوه ساده هندسي شکل له ډیزاین څخه یوه کاپي جوړه کړئ او بیایې رنګه کړئ.



# لوست



## د افغانستان له هنري مؤسسو سره بلدتیا

## پوهیږئ چې هنرمندان په کومو مؤسسو کې تحصیل کوي؟

په افغانستان کې د هنرمندانو د روزلو لپاره د زده کړې بېلې بېلې مؤسسې شتون لري. د هنر علاقمندان کولی شي په دې مرکزونو کې د هنر په مختلفو څانګو کې تحصیل وکړي چې هغه عبارت دي له:

- **د کابل د صنایعو نفیسه ښوونځی** دا ښوونځی د پروفیسور غلام محمدخان میمنګي په وړاندیز په ۱۳۰۲ هـ. ش کال کې تأسیس شو، ترڅو علاقه لرونکي په بېلو بېلو څانګو، لکه: نقاشي، انځورګري، مهندسي، سرامیک، نجاري، اوبدل او طباعتي کې تحصیل وکړي. له دې ښوونځي څخه ډېر تکړه استادان چې په شرق کې یې ساری نه درلود، فارغ شوي دي، لکه: استاد (غوث الدین خان)، استاد کریم شاه خان استاد خیر محمد خان عطایي او استاد خیرمحمد خان یاري.
- **د غلام محمد میمنګي ښوونځی**: دا ښوونځی د محمد ظاهر شاه د سلطنت په دوران کې د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت په چوکاټ کې جوړشو. د مستظرفه صنایعو د کورسونو په نوم یادېده چې په لومړنیو وختونو کې یوازې انځورګري په کې تدریس کېدله، وروسته بیا دا ښوونځی د غلام محمد میمنګي په نوم ونومول شو چې بېلې بېلې هنري څانګې، لکه: مجسمه جوړونه، میناتوري په هغې باندې ورزیاتې شوې. په دې ښوونځي کې د استاد خیرمحمد خان عطایي او استاد خیر محمد خان یاري تر لارښوونې لاندې ډېر زده کوونکي وروزل شول.
- **د ښکلو هنرونو پوهنځی**: د ښکلو هنرونو دیپارتمنت په لومړنیو وختو کې د کابل پوهنتون د ادبیاتو د پوهنځي په چوکاټ کې د سردار محمد داود خان د جمهوریت په دوران کې تأسیس شو. په ۱۳۶۳ هـ. ش کال کې د کابل پوهنتون د ادبیاتو له پوهنځي څخه جلا او د ښکلو هنرونو د پوهنځي په نوم ونومول شو. په دې پوهنځي کې د نقاشۍ ، ګرافیک ، تیاتر، موسیقي او د مجسمې جوړونې



دیپارتمنتونه شــتون لري چې ډېر تکړه او تجربه لرونکي اســتاذان د هنر په بېلو بېلو څانګو کې د شاګردانو په روزنه او تدریس بوخت دي.



- **د کابل د خراباتو ښــوونځی**: دا ښــوونځی د لومړي ځل لپاره د اصیلي افغاني موسیقۍ د زده کړې لپاره د استاد قاسم افغان ، استاد غلام حسین، قربان علي خان او استاد پیاراخان لخوا د موسیقۍ د زده کړې لپاره تأسیس شو. په دې ښوونځي کې زده کوونکو د سندرووېل او د موسیقي د آلو غږول په مسلکي ډول زده کول، ترڅو په جشــنونو، دولتي او رسمي محفلونو او د ولسونو د خوښیو په مراسمو کې ګډون وکړي او خپل هنر د خلکو خدمت ته وړاندې کړي لکه استاد قاسم چې په یوه بیت کې داسي وایي:

| | |
|---|---|
| گر ندانــی غیــرت افغانــی‌ام | چون به میدان آمدی می دانی ام |

چې وروسته استاد رحیم بخش دا شعر په کلاسیک ډول ویلی دی، د دې مکتب زده کوونکو د افغاني اصیل هنر لپاره ســترې ویاړنې ترلاســه کړې دي. په ځانګړې ډول هندوســتان د ســترو استادانو لخوا اســتاد محمد حسین ســرآهنګ د موسیقۍ د بابا لقب، د موسیقۍ د سرتاج لقب ګټلی دی.

- **د موزیک لیســه**: د لومړي ځل لپاره په افغانســتان کې د موســیقۍ رســمي لیســه ده چــې د پوهنــې وزارت په چوکاټ کــې په ۱۳۵۳ هــ ش کال کې د سردار محمد داود خان د حکومت په دوران کې تأسیس شوه. په دې لیسه کې ســربېره په عالي موسیقۍ نور مضمونونه، لکه: ســاینس، اجتماعیات، ادبیات هم تدریس کېږي. د موسیقۍ په برخه کې نامتو استادان، لکه: استاذ فقیر محمد ننګیالی، اســتاد اسماعیل عظیمي او استاد سلیم سرمست موسیقي په علمي توګــه تدریس کوله. د دې لیســې زده کوونکو په ډلییــزو ترانو کې چې د ملي ټلویزیــون څخه به ښــودل کیدې، ګډون درلود. په دې لیســه کې کلاســیکه موسیقي هم تدریس کیده.

**تمرین**:

۱ ـ پوهیږئ چې په راډیو ټلویزیون کې کوم هنرمندان مرسته کوي؟

۲ـ د هغو کسانو ترمنځ چې د خپلې علاقې له مخې هنر سرته رسوي او هغه کسان چې له هنري ښوونځي څخه فارغ شوي وي کوم توپیرونه لري؟

۳ـ هغه څوک چې له هنري ښوونځیو څخه فارغېږي، کوم کارونه سرته رسوي؟



لوست



# له شعر څخه انځورګري

## د يو ې کيسې يا د يوه ښکلي شعر له اورېدو وروسته څه احساس درته پيدا کېږي او کوم تصويرونه مو په ذهن کې درګرځي؟

کله چې د غرو او د هغو د لمنو، ګلانو، دښتو، وګړو، وطن او ... په هکله يو شعر اورو، داسې احساس کوو چې په هغه فضا کې عملاً شتون لرو يا د دې وګړو او شيانو سره اړيکه لرو. دا خيالونه کولی شو چې د انځورونو په بڼه يې بيان کړو. په دې ترتيب سره هر وګړی کولای شي چې د خطونو، شکلونو او رنګونو په ژبه خپل احساس نوروته بيان کړي. هغه تصويرونه چې د يوه شعر له لوستلو څخه ستاسې په ذهن کې درګرځي، په خپله خوښه رسامي کړئ.
وروسته هغه رنګونه چې د شعر له فضا سره همغږي کوي، په هغه يې رنګه کړئ، خپل کارته په غور سره وګورئ او فکر وکړئ چې نور کوم کوم شيان پرې اضافه کړئ چې د شعرله فضا سره زياته همغږي پيداکړي او هرڅه مو چې د شعر په هکله په فکر کې ګرځي، پرې زيات يې کړئ ترڅو ستاسې تصوير شعر ته ورنژدې شي.





(۱ ـ تصویر) له شعر څخه نقاشي د (فرشتې آذر)

**تمرین**:

یوشعر چې تاسې ته په زړه پورې وي، انتخاب کړئ او بیا له خپل ښوونکي سره مشوره وکړئ، یو تصویر انځور کړئ چې د شعر مفهوم د شکلونو او رنګونو په بڼه بیان کړي.

# ۱۲ لوست



## له کمپیوټر سره بلدتیا

## تراوسه مو په کمپیوټر کار کړی دی؟

کمپیوټر هغه دستگاه ده چې د بریښنا پواسطه کارکوي چې مختلف امکانات لري، لکه: د متنونو لیکل، انځورګري، ډیزاینونه او د نقاشۍ بېلې بېلې موضوع گانې په دې دستگاه باندې په ساده‌گۍ او ډېره چټکتیا سره سرته رسېږي. دا دستگاه له دوو برخو څخه SOFTWARE او HARDWARE جوړه شوی ده. د کمپیوټر HARDWARE مختلفې برخې لري، چې یوه له بلې سره نښتي یا وصل شوي دي، لکه: کیس (CASE)، مانیتور (MONITOR)، یا هغه صفحه چې د ټلویزیون صفحې ته ورته ده، د کیبورډ صفحه (KEYBOARD) چې د ټایپ صفحې ته ورته ده د (لیکلو او د مختلفو عملیاتو لپاره استعمالېږي) او موس (MOUSE) چې د یوې وړې دستگاه په مخ (پد) PAD د کیبورډ ترڅنګ قرار لري. د هغې د تڼیو په کې کارولو سره کولی شو چې د مانیتور په صفحه هره علامه فعاله کړو. د CURSOR چې د مانیتور پرمخ حرکت کوي، له موس (MOUSE) سره اړیکه لري او موس ته د حرکت ورکولو په نتیجه کې کولی شو چې د ځای ښود علامې COURSER ته تغییر ورکړو او د فعالیت سرته رسولو ځای، لکه: (د خط ایستل) په نښه یا مشخص کړو. د موس د تڼیو کېکاږل د کلیک CLICK په نوم یادېږي. په معمولي ډول د موس له کیڼې خوا او ښي خوا تڼۍ د (کیڼ کلیک او ښي کلیک) په نومونو یادېږي.

د ځینې نورو فعالیتونو سرته رسولو لپاره لازمه ده چې تڼۍ دوه واره کلیک شي چې ډبل کلیک ورته وايي.

(SOFTWARE) په کمپیوټر کې مختلف پروګرامونه شته چې په دستگاه کې وجود لري او په هره یوه یې کولی شو ځانګړې کارونه سرته ورسوو، لکه: (PAINT) پروګرام چې د رسامۍ او نقاشۍ لپاره کارول کېږي چې د وینډوز (WINDOWS) یا د کمپیوټر اصلي پروګرام سره مل دی.کله چې په کمپیوټر



پورته (۱ ـ تصویر) د کمپیوټر مختلفې برخې

کار کوو، نو لومړی باید هغه روښانه کړو، د کمپیوټر روښانه کېدل د کیس پرمخ تڼۍ او د مانیتور پرمخ تڼۍ باندې سرته رسېږي. کله چې کمپیوټر روښانه کوئ، نو وینډوز په اتوماتیک ډول شروع کېږي او د (WELCOME) صفحه څرګندېږي.

وروسته (DESKTOP) څرګندېږي چې دا هغه ځای دی چې کولی شو په بېلو بېلو پروګرامونو باندې کار وکړو. یو شمېر ایکونونه (ICON) د ډیسک ټاپ په مخ لیدل کېږي. دا په هغه پروګرامونو پورې اړه لري چې په کمپیوټر کې نصب شوي دي او په هریوه یې چې کلیک کړئ فعالیږي. په دې سربېره دا ایکنونه د سټارټ (START) په تڼۍ پیل کولی شو. د سټارټ د تڼۍ په کلیک کولو سره د پروګرامونو جدول خلاصېږي او د ځای ښود (CURSOR) علامه په هریوه باندې باید وساتي، نو یوبل پروګرام خلاصېږي. هر پروګرام مو چې خوښ وي کولی شئ د هغې فضا ته ننوځئ په هغې کې یوه کړکۍ خلاصېږي چې ځانګړي امکانات لري. د کار تر تمامېدو وروسته پروګرام باید بند کړئ. د کمپیوټر د ګل کولو لپاره ضروري ده چې له وینډوز څخه خارج شئ. ددې کار لپاره باید د سټارټ مینو ته ننوځئ چې په لاندینۍ برخه کې یې (TURN OFF COMPUTER) لیکل شوي ده هغه کلیک کړئ.

یوه وړه کړکۍ خلاصېږي د هغې په منځ کې د (TURN OFF COMPUTER) تڼۍ ده، هغه کلیک کړئ چې وینډوز XP بند او کمپیوټر ګل شي.



(۲ ـ تصویر) د کیبورډ صفحه



**تمرین:**

په ټلویزیون کې د کمپیوټر د زده کړې پروګرام ته وګورئ او د هغه په هکله سره وغږېږئ.

## ۱۳ لوست



# د یوې ساده میناتورۍ کاپي کول

**کولی شئ چې د ترس له کاغذ پرته یوه کاپي جوړه کړئ؟**

په اتم ټولګي کې له میناتورۍ سره بلد شوي یاست، څه ډول کولی شئ چې له یوه ساده میناتور څخه کاپي جوړه کړئ او د خپلې خوښې میناتور وټاکئ.

په غور سره د میناتور تصویر، خطونو، ډیزاینونو او رنګونو ته وګورئ.

تر اوسه مو د یوې طرحې او مختلفو ډیزاینونو د کاپي کولو لپاره له ترس کاغذ څخه ګټه اخیستې ده؟

اوس هڅه وکړئ چې له ترس کاغذ پرته، لومړۍ هر شکل ته په ځیر وګورئ او وروسته هغه څه چې وینئ په ډېر زغم سره کاپي کړئ. یوه ټوټه کاغذ د میناتور د کاغذ په اندازه راواخلئ او لومړۍ د شکل لویه برخه په هغه څه چې ستاسې په نظر لوی ښکاري د اصلي طرحې په شان انځور کړئ او وروسته یې د کوچنیو شکلونو په انځورولو پیل وکړئ او هڅه وکړئ چې داصلي طرحې په شان یې وکاږئ او خپل انځور تکمیل کړئ.

جوړه شوې طرحه په شکاشټیپ د مېز په مخ او یا د رسامۍ د تختې په مخ ونښلوئ. بیا نو رنګونه د اصلي طرحې د رنګونو په شان ترکیب کړئ او همېشه په یاد ولرئ کله چې رنګونه کاروئ، ترڅو پورې  چې یو رنګ وچ

شوی نه وي بل رنګ پر هغې باندې مه کاروئ، ترڅو وکولی شئ چې د رسم جزئیات په ښه شان پکې ځای پر ځای کړئ. د کار له خلاصېدو وروسته کاغذ د مېز له سر اویا د رسامۍ له تختې څخه جلا کړئ او په یوه ښیښه یې چوکاټ کې یې وساتئ: له روښانه څخه د تیاره کېدو په لوریې کاپي کړئ.



(۱ـ تصویر) دا میناتور د کمال الدین بهزاد اثر دی.



(۲ـ تصویر) طرحه په ترس کاغذ کاپي شوې ده.



(۳ ـ تصویر) طرحه بل کاغذ ته کاپي شوې ده.



(٤ ـ تصویر) د تصویر رنګه شوې برخې

**تمرین**

له یو ساده میناتور څخه یې کاپي کړئ.

# ۱۴ لوست



## د بېلو بېلو ګل ګنډنو سره بدتیا

## پوهېږئ چې په ټوټه باندې ګلدوزي څومره لرغونتیا لري؟

(تصویر ۱)



د صفویانو په دوره کې افغاني او ایراني ګل ګنډنو ځانګړې ظرافت درلود چې نړیوال شهرت یې تر لاسه کړی و. د کندهار او هرات ګل ګنډنې امکان لري د هغې دورې محصول وي. په ننني نړۍ کې ګل ګنډنه د هنري ځانګو یوه دودیزه برخه ده چې په زیاترو سیمو کې یې ارزښت د پاملرنې وړ دی. ګل ګنډنه هغه هنر دی چې په افغانانوکې له ډېرو پخوانیو زمانو څخه رواج لري چې په ځانګړې ښکلا او ظرافت ترسره کېږي.

ګل ګنډنې څخه د کالیو د ښکلا، پردو، میز پوښونو، جای نمازونو، څادرونو، خولۍ ګانو او د آسونو او اوښانو د ښکلا لپاره ګټه اخیستل کېږي. د ګل ګنډنې طریقې په درو برخو وېشل کېږي. په

او له طریقه کې ټوله د رخت ټوټه په رنګارنګ نقشونو پوښل کېږي.
لومړیو تصویرونو ته پاملرنه وکړئ. په دویمه طریقه کې د رخت د ټوټې
یوه برخه ګنډل کېږي چې د ګل ګنډنې او د رخت د ځمکې د ښکلا
اړیکه په رنګ او ډیزاین کې منځ ته راوړي. دویم تصویر ته وګورئ.
دریمه طریقه د دې هنر پر مختللې نمونه ده چې بېل بېل ډولونه لري،
لکه: په ((ګراف کې ګنډنه)) چې یوه اندازه تار د باندې را وباسي او په
ظریفو بخیو یې ګنډي او د هغې په شاوخوا باندې ګل ګنډنه کوي چې یو
نوی ډیزاین منځ ته راشي.
د ګراف ګنډنې نمونې په دریم تصویر کې وګورئ.



(۱ـ تصویر) د بخارا ګنډنه

د گل گنډنو لپاره د مختلفو ټوکرانو، د ورېښمو او سنډو له تارونو څخه ګټه اخیستل کېږي. که چېرې ښکلي او تازه وي د طلایي رنګه او نقریي رنګه ورېښمو او سنډو څخه دې استفاده وشي چې په نتیجه کې به یو ارزښتناك اثر په لاس راشي. په څلورم او پنځم شکل کې د طلایي ورېښمو او نقریي سنډو دوو نمونوته پاملرنه وکړئ.

ډېر مهم ټکي په ګل کنډنه کې د هغې کیفیت، طرح، ډیزاین او رنګونه دي چې په ډېر ظرافت سره باید سرته ورسېږي او ډیزاینونه يې په دوو ډلو وېشل کېږي، لومړی د ګلانو، وښو، حیواناتو او انسانانو انځورونه تر سترګو کېږي (٦ تصویر کې وګورئ.) په دویمه ډله کې هندسي شکلونه ترسترګو کېږي. سربېره


۲ـ تصویر) په سنډو ګراف ګنډنه


(۳ تصویر) په مخمل نقره ګنډنه


(٤ـ تصویر) په تافته باندې په طلایي رنګ سکوی

د ناوې شال په ۱۲ پېړۍ کې



پردې کله کله د طرحو په منځ کې ليکنې هم ګنډل کېږي. (۷ تصوير ته په ځير وګورئ) دا د سکوی يوه په زړه پورې نمونه ده چې په ننني وختونوکې د مسلمانانو ترمنځ فولکلوريک دود دی. دا نمونه د قرآن کريم يو آيات دی چې د معظمې کعبې په پرده په طلايي رنګه په ورېښمو او سنډو په تور بخمل په برجسته توګه ګنډل شوې ده.



(۸ ـ تصوير) د کعبې شريفې د پردې پرمخ ګنډل شوی د قرانکريم ايات



(۷ ـ تصوير) په هندسي شکلونو بلوڅي ډيزاين



**تمرين**:

د ګل ګنډنو يوه نمونه پيداکړئ او د هغه د رنګ، ډيزاين او د ګنډلو طريقه سره پرتله کړئ.

# ۱۵ لوست

## د یوه ساده سکوی (گل گنډ) جوړول

تر اوسه مو د گل گنډنې څو نمونې جوړې کړې دي؟



د رخت د مختلفو ټوټو دښکلا لپاره له گل گنډنو څخه استفاده وکړئ.
گل گنډل په بېلو بېلو طریقو سرته رسېږي. تاسې کولی شئ چې د یوې ټوټې رخت د ښکلا لپاره د سکوی یوه طریقه انتخاب کړئ. د طرحې د نقلولو طریقې هم خورا زیاتې دي. ماهر گل گنډونکی د طرحې له انتقال پرته د رخت پر ټوټه باندې بېل بېل ډیزاینونه سکوی کولی شي او هغه



(۱ ـ تصویر) په رخت باندې گل گنډنه جوړ شوې ده



(۱ ـ تصویر) په رخت باندې گل گنډنه جوړ شوې ده

ځوک چې ډېر مهارت نلري، هغوی د کاربن پیپر یا د طرحې د خطونو په سوري کولو باندې د خاورو یا د سکرو میده ګي اچوي، ترڅو د رخت پرمخ يې نښې پاتې شي. د ګل ګنډلو د سرته رسولو لپاره، د رخت ټاکل شوې طرحه، رنګه سنډ یا وریښم او د رخت د کلك نیولو لپاره یوه کارګاه تیاره کړئ.



(۳ ـ تصویر) د طرحې د مختلفو برخو ډکیدل

لومړی طرحه د کاربن پیپر او یا د طرحې د سوري کېدو له لارې رخت ته ورنقل کړئ. بیا طرحه په چپه ګنډنه ډکه کړئ چې ډیزاین منظم شي. د دې لپاره چې طرحه مو ښکلې شي د سرو سنډو او یا د وریښمو په واسطه د هغې د منځنی برخې د ډکېدو هڅه وکړئ. په دې ډول طرحه له رنګ څخه ډکه او ښکلې کېږي. په ډکېدو کې يې کوښښ وکړئ چې ستنې په منظم ډول د یوې او بلې په څنګ ولګیږي او د کار هیڅ ځای خالي پاتې نه شي او د طرحې سطحه په رنګه سنډو یا وریښمو وپوښل شي.



(٤ ـ تصویر) تیار شوی ګل ګنډ

د کار په پای کې لازمه ده چې د رخت څلورخواوې قات او ويې ګنډئ چې د وخت په تېرېدو يې تارونه راونه وزي. جوړ شوی ګل ګنډ کولی شئ په چوکاټ کې وساتئ او یا هغه د بالښت، دستکول، کالیو او ... لپاره وکاروئ. او هم کولی شئ په دې کار، بالښت، روجایي، د میز پوښ، د کمیس ټټر، د لستوڼو خولې،لمن او داسې نوروته ښکلا ور وبخښئ.



**تمرین:**

یوه طرحه انتخاب کړئ او په هغې کې ګل ګنډنه وکړئ.

## ۱۶ لوست

# د افغاني هنرمندانو پېژندنه



## د معاصرو افغاني هنرمندانو د آثارو نمونې مو ليدلې دي؟

### استاد کريم شاه خان:

کريم شاه خان په ۱۲۹۸ هـ ش کال کې د کابل په ښارکې د خپل ژوندانه لومړنۍ ورځې پيل کړې. استاد خپلې زده کړې په اعداديه کې سرته رسولې او د رسامۍ هنر يې د صنايعو په ښوونځي کې زده کړ. استاد کريم شاه خان له ښوونځي څخه تر خلاصېدو وروسته د ښوونکي مقدسه دنده ترلاسه کړه چې څلوېښت کاله يې په پوره ايمانداری او اخلاص دغه دنده ترسره کړه او د رسامۍ د هنر د تدريس له لارې يې ډېر زده کوونکي وروزل. استاد د ډېرو عالي اخلاقو او ډېر ښه هنر خاوند و.

دده هنري کارونه د رياليزم (واقعيت پالنې) په سبک برابر ووچې پر طبيعي منظرو سربېره د ځارويو او الوتونکو په سکيچ کولو کې يې ځانګړی استعداد او لياقت درلود. استاد يو کتاب چې د وحشي او اهلي حيواناتو او الوتونکو انځورونه و، تأليف کړ چې په ۱۳۳۲ تر ۱۳۳۳ هـ ش کلونو کې د صنايعو د ښوونځي لخوا طرح او ډيزاين شو او د پوهنې وزارت لخوا چاپ شو. استاد د شپيتمې کاليزې په اخير کې په کابل کې له دې فاني نړۍ څخه سترګې پټې کړې.

**استاد شبنم:**

استاد غلام محی الدین شبنم د عبدالرحمن زوی په ۱۳۱٤ هـ ش کال کې د غزني په مرکز کې وزېږېد. د ابتدایي او ثانوي زده کړو له ترسره کولو وروسته یې خپل لیسانس د فلپین له هېواد څخه لاس ته راوړ او بېرته وطن ته راستون شو. استاد شبنم د لومړي ځل لپاره د کابل په دارالمعلمین کې د هنر د ښوونکي په حیث مقرر شو. د خدمت په ۳۹ کلنه دوره کې د خپلو شاگردانو او کاري اندېوالانو لپاره زړه سوانده اوښه ښوونکی و. د خدمت په دوره کې یې د پام وړ ویاړنې، لکه: نښانونه، مډالونه، تقدیر نامې ترلاسه کړې دي. استاد شبنم په ابتکاري هنر کې د افغانستان د هنر یو غښتلی او وتلی شخصیت و چې ډېر آثار لري. سربېره پر هنري کارونو د هنر په هکله تألیفات هم لري.

لکه «د ځوانانو لپاره د نقاشۍ د تدریس لارښود» چې په ۱۳۸۰ هـ. ش کال کې چاپ شوی دی او بل کتاب یې «نقاشان معاصر افغانستان» دی چې په ۱۳۸۱ هـ ش کال کې چاپ شوی دی.



**تمرین:**

د خپل چاپېریال له الوتونکو څخه یو سکېچ کړئ.

لوست ۱۷

# د قرآني آیتونو را بر سیره او برجسته کول



## تر اوسه مو ډبریني او خټیني لرغوني لوحې لیدلي دي؟
## دا لوحې مو په کوم ځای کې لیدلې دي؟

زموږ په ګران هیواد کې ډبریني لوحې په ښکلو ډیزاینونو او یا په اسلامي خطونو ښکلي شوي دي. پخوانی ودانۍ په ښکلو ډیزاینونو په ځانګړې ډول جوماتونه ښکلي شوي دي. اسلامي خطونو شخه په ګټه اخیستنه، په ودانیو باندې د قرآني آیاتونو لیکنې د ښکلا، تبرک او د لوی خدایﷻ د ذکر لپاره دي. تاسې هم کولی شئ چې د نامتو خطاطانو لیکنې پیداکړئ او د هغو له مخې یوه ښکلې خټینه لوحه د خپل کور د ښکلا لپاره جوړه کړئ. لومړی د ښکلي خط یوه نمونه پیداکړئ. د قرآنکریم د آیاتونو د جوړولو په وخت کې باید اودس وکړئ. د خطونو څنډې په ډېر غور په بیاتي غوڅې



( ۱ تصویر )خټه او صفحه جوړه ده



( ۲ تصویر ) طرحه د ختي صفحې ته نقل شویده.

کړئ او هڅه وکړئ چې د لیکنې ځای په منظم ډول قطع او د لیکنې ځای خالي شي. تیاره شوې طرحه د خټینې لوحې په سرچې ۲ سانتي متره قطر ولري، کېږدئ او کاغذي طرحه د سنجاق په واسطه په خټه کې کلکه کړئ. د لیکنې ځایونه په یوه شي چې نوکه یې ډېره ظریفه وي، په ډېر غور او دقت ژور کړئ، بیا کلک شوی کاغذ د لوحې له مخې پورته کړئ، وروسته له هغې د یوه سانتي متر په اندازه اضافي خټه ترې وباسئ چې لیکنه را بر سیره شي. بیا د لیکنې څنډې ښویې یا صافې کړئ او پرېږدئ چې د ختو لوحه وچه شي. که خوښه مو شوه، نو تر وچېدو وروسته کولی شئ هغه رنګه کړئ او پر هغې باندې و رنس ووهئ چې ځلانده شي.



(۳ تصویر) اضافي خټه له صفحې وباسئ.



(٤ تصویر ) جوړه شوې صفحه هواره او ښویه کړئ.

**تمرین:**

د اسلامي خطونو یوه ساده او ښکلې نمونه په برجسته توګه جوړه کړئ او هغه په رنګونو ښکلې کړئ.

# ۱۸ لوست

## په نقاشۍ کې له (PAINT) پروګرام څخه ګټه اخیستنه



### تاسي کولی شئ چې په کمپیوټر نقاشي وکړئ؟

د (PAINT) له پروګرام څخه د استفادې لپاره لومړی کمپیوټر روښانه کړئ.

کله چې د مانیتور (DESKTOP) پرمخ اصلي صفحه ښکاره شي د سټارټ (START) د تڼۍ په کلیک کولو سره چې د صفحې په لاندېنۍ



(PAINT) صفحه په مانیتور کې.

برخه کې کيڼ لوري ته ده، (PROGRAMS) ليکنې ته يوسئ، يوه نوې مينو خلاصېږي. په دې مينو کې (ACCESSORIES) پيداکړئ او د ځای ښود نښه هغې ته ورولئ. په ترتيب يوه بله نوی مينو خلاصيږي چې په هغې کې د (PAINT) پروګرام وجود لري او په هغه باندې بايد کليک شي چې د(PAINT) پروګرام ته ور داخل شئ. د(PAINT) کړکۍ په يوه لويه سپينه او رنګه صفحه کې په اصلي برخه کې شامله ده. کولی شئ چې پر هغې باندې انځورګري او نقاشي وکړئ. د دې صفحې په چپ پورتني طرف کې د انځورګرۍ لوښي او وسيلې ليدل کېږي، لکه: پنسل، پنسل پاک، برس، رنګ او ... چې هر يو يې په کليک کولو سره فعاله کېږي او بيا د برس په حرکت خطونه مشخص کړئ. د پنسل، برس يا د رنګ په علامو باندې کليک وکړئ او د موس په حرکت د خپلې خوښې خطونه او شکلونه انځور کړئ. وروسته بله علامه فعاله کړئ په هغې باندې په کليک کولو نوي شکلونه د هغې پرمخ وکاږئ. دې کار ته ادامه ورکړئ چې له ټولو وسيلو سره بلد شئ. د صفحې په لاندينی برخه چپې



(تصوير ۲)

خواته د رنګ پلېټ وجود لري چې د تور او سپین په ګډون ۲٦ رنګونه دي. د دې رنګونو د هريوه په کليک کولو کولی شئ د خپلې خوښې رنګ فعال کړئ ترڅو رنګه خطونه او شکلونه رسم کړئ. د رنګ سطل چې د عمودي مينو د پورتنۍ برخې په چپ طرف کې شتون لري د صفحې په لاندې پلېټ د هر رنګ په کليک کولو سره کولی شئ بېلې بېلې سطحې رنګه کړئ.

د صفحې پورتنۍ چپې خوا ليکنوته ځير شي د (IMAGE)تڼۍ کليک کړئ چې کوچنۍ مينو خلاصه شي، په دې مينو کې(CLEAR IMAGE) کليک کړئ چې صفحه بيا سپينه شي، اوس در نګ له سطل څخه د خپلې خوښې په رنګ اصلي صفحه رنګه ګرځ. وروسته په وسيلو او نورو رنګونو رسامي او نقاشي وکړئ. که چېرې د پليټ په هر يو رنګ کليک وکړئ، يوه وړوکې کړکۍ خلاصيږي چې هغه ډېر زيات رنګونه ستاسې په واک کې درکوي. تاسې کولی شئ چې د دې جدول هريو رنګ چې ټاکئ د OK د تڼۍ په کليک کولو هغه رنګ فعال کړئ. بيا کېدلی شي چې رسامي او رنګ اميزي پرې و کړئ. که غواړئ چې له نورو بېلو بېلو رنګونو څخه ګټه واخلئ، نو د (DEFINE CUSTOM COLORS)تڼۍ کليک کړئ، ترڅو د بېلو بېلو رنګونو جدول ستاسې په واک کې درکړي. د هرې برخې



(تصوير۳)



(تصوير ٤)

په کلیك کولو د جدول ښېلو ښېلو رنگونو درجې یعنې تیاره او روښانه رنگونه د یوې نرۍ فیتې پر مخ د جدول ښۍ خواته لیدلی شئ او په هریوه یې چې کلیك کړئ او بیا د (OK)تڼۍ کلیك کړئ ستاسي د خوښې رنگ فعالیږي.
د نوي رنگ تر انتخابولو وروسته (ADD TO CUSTOM COLOR) کلیك کړئ، دا نوی رنگ په رنگه پلېټ کې په اصلي صفحه ور زیاتیږي.
دې پروگرام سره په بلدېدو سره کولی شئ چې بېل بېل تصویرونه نقاشي کړئ او خپل ذهني خیالونه، ابتکاري طرحې، هندسي طرحې او آزاد شکلونه له خپلې خوښې سره سم انځور کړئ.



(تصویر ۶)



**تمرین**:

د(PAINT)پرگروام په مرسته د خپلې خوښې موضوع انځور کړئ.

# د افغانستان له ملي موزیمونو سره بلدتیا

**د کندهار موزیم:**
د کندهار د موزیم لرغوني لوښي او آثار تر ۱۳۳٤ هـ ش کال د ښاروالۍ د وسایلو سره یوځای ساتل کېدل. په همدې کال کې د کندهار د نایب الحکومه عبدالغني خان په امر او لارښوونه د ښاروالۍ دفترونه او د موزیم ماموریت سره جلا شول. د موزیم لپاره یوه خونه و ټاکل شوه چې لرغوني آثار د ننداريې لپاره په کې په منظم ډول کېښودل شول. په ۱۳۳۹ هـ ش کال کې د پوهنې وزارت د اقدام له مخې موزیم له ښاروالۍ څخه جلا له ۷۰۰ آثارو سره د پوهنې په مدیریت پورې وتړل شو. د دې موزیم ځینې آثار د دولتي ادارو لخوا اهدا شوي وو او ځینې نور یې له بازار څخه رانیول شوي وو.

**د غزني موزیم:**
د لرغونو آثارو د زیاتېدو په وجه چې په یوه خونه کې ساتل کېدل، د غزني موزیم تأسیس شو د دې موزیم آثار ځینې په ناخاپي ډول لاس ته راغلي دي، لکه: د بېلو بېلو زمانو لرغوني سکې، خطي نسخې او هغه د ډبرو د لوښو ټوټې چې د سلطان محمود غزنوي د مقبرې په ودانۍ کې ساتل کېدې.
د ایټالوي لرغون پېژندونکو د کیندلو په نتیجه کې چې د غزني په مختلفو سیمو کې یې وکړې، ډېر لرغوني آثار لاسته راغلل چې ځینې یې له اسلام څخه مخکې او ځینې نور یې په اسلامي دورو پورې تړاو درلود، نو ځکه پس له هغې د غزني موزیم زیات ارزښت پیداکړ. د غزني د موزیم آثار دوه ډوله دي. یو ډول هغه آثار دي چې تر کیندنو پرته لاس ته راغلي دي، په عمومي ډول د غزني له بازار څخه اخیستل شوي دي، لکه :
قلمي نسخې، ډبرې ، لوحې او فلزي آثار چې د غزني له ښار څخه دباندې له اطرافو څخه لاس ته راغلي دي او د غزنویانو په دورو پورې اړه لري چې په هغو کې دوې لویې کټوې چې په هغې باندې د مات شوي صلیب او په کوفي خط د لیکنو علامې موجودې دي، د زمریانو مجسمې چې په بڼونو د اوبو د فوارو او یا شیندلو استفاده ترې کېده. د مرمرو ډبرې چې په هغې باندې د حیواناتو څېرې په خیالي بڼه کیندل شوې وې، سکې، سفالي لوښي، د ښکلا ټوټې چې په غالب گمان یا له ختې او ځینې یې له محلي گچ څخه دي. د دې آثارو په ډله کې شامل دي. د غزني د موزیم ارزښت په دوو اصلونو کې نغښتی دی. لومړی دا چې موزیم د غزنویانو د دوران د هنري سبک ښکارندویي کوي او دویم دا چې د غزني د موزیم ځینې آثار له اسلام څخه په مخکې دورو پورې تړاو لري.